## مسئله حياة الانبياء :

نن چې كومه مسئله زير بحث گرځوو مسئله حيات الانبياء ده عليهم الصلاة والسلام.
مخكې په دې مسئله كې ډيره نزاع چا نه وه كړې دا ددې زمانې د اشاعتيانو ايجاد دي او مخكې هم چې كوم خوارج د عذاب قبر منكر وه هغوي د حيات برزخ هم منكر وه د حيات برزخ متعلق دغه تفصيل يادول په كار دي چې يو روح د ميت ده بل ذات جسد او نفس د ميت دي اجساد داموات بغير ددري جماعاتو نه چې هغه دري جماعات منصوصي دي او يو بل جماعت وراندې علماء دلالة النص نه ثابتوي چې هغه هم داخل دي ددغه ځلورو جماعاتو نه علاوه چې نور څومره د خلكو اجساد دي هغه خاوري كيږي او ختميږي.
ځلور جسدونه، نه ختميږي چې يو جسد د انبياء عليهم الصلاة والسلام دي :

**ان الله حرم على الارض ان تاكل اجساد الانبياء.** ( سنن ابن ماجه ص ۳۸۶)

دويم شهداء دي د شهدا او متعلق نص قرآني دي چې : **ولا تقولوا لمن يقتل في سبيل الله اموات بل احياء.**

دريم قراء حضرات دي قاريان چې سينه كې يې قرآن عظيم الشان وي د هغوي متعلق هم نص د حديث دي او حديث قدسي ده چې حافظ قبر كې كيخودلې شي ربِّ كائنات ځمكې ته خطاب كوي : اى زما ځمكې ! زما د كلام حافظ درغې ضائع يې نه كړې ځمكه په لسان د حال سره جواب وركوي يارب هغه څوك چې ستا كلام سينه كې لري زه يې نه شم ضائع كولې دغه نص قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللَّهُ د : **ولا تقولوا لمن يقتل في سبيل الله اموات**، ذيل كې ذكر كړي دي او دا جزيه يې ترې ثابته كړې ده چې جسدونه د حافظانو قبرونو كې نه خرابيږي دادري منصوصي دي.

ځلورم جسد د صديقينو اولياو ده هغه د **دلالة النص** نه ثابتوي هر كله چې مقام د شهيد په مقابل د مقام د صديق كې ادنى وي او مقام د صديقينو ترې اعلى دي چې ددوي لپاره حياة جسدي برزخي يعني جسد يې روغ پاتې كيږي نو قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللَّهُ دغه ( عبارت مخكې ذكر شوې ) ځاى كې فرمايي مخكې چې كوم تير شو صديقين اولياء هم په

قبرونو کې نه ضائع کیږي اصلاً شهداء ته چې احیاء ویلې شوې دي نو دغه ځای کې دا ذکر نشته چې ددوي جسم دننه خرابیږي نه خو ډیر ځل داسې شوې چې یو شهید ډیر وخت وروسته رابهر شوې هغه روغ جوړ وي او په دې ډیر شواهد موجود دي په زمانه د صحابوو کې هم دا واقعات ثابت دي د احد شهیدان د حضرت معاویه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په زمانه کې چې کله د احد سره قریب هغه یو دیوال جوړ کړ د اوبو ډیم یې جوړ کړ او هغه لختي یې مسجد نبوي ته راورسوه نو دغه وخت کې د احد د میدان په غاړه لختي کنستل کیده او د عمرو بن جموح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ځوي په دې کې کار کوي او هغه وایي چې کله یوه پونډي ولړیده هغې نه وینه روانه شوه لحد چې رابنکاره شو نو ما په کې خپل پلار وپیژنده عمرو بن جموح رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. مؤرخین لیکي چې ددې واقعې مینځ کې او د لختي د کنستلو کې اوه دیرش (۳۷) کاله شوې وه.

او یا دغه شان هغه واقعه د حضرت عبدالله بن تامر د شهادت تاسو ته ما بیان کړي وه په مسئله د کرامت الاولیاء کې دغه عبدالله بن تامر تفسیر قرطبي هم واقعه راخیستي ده، مظهري هم راخیستي ده چې دغه عبدالله بن تامر د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دورِ خلافت کې یو زنانه خاوره د یو کمر نه کنسته او په هغې کې لحد رابنکاره شو او یوه ګوته رابنکاره شوه او یوه ورقه بیا دا عمر فاروق صاحب ته یوړل شوه هغه چې وکتل نو دا ګوته او دغه خط د عبدالله بن تامر وه نو او بیا (۷۰) کاله د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه.

یوسف ذونواز بن شرحبیل مخکې تیر شوې وه نو تقریباً دا بیا د عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلافت په وخت کې تقریباً سلو کالو نه زیات وخت پرې تیر شوې دي راوبنکل شو نو روغ وه جسد دده او داسې نور ډیر واقعات شته دي.

د افغانستان په تاریخ کې هم شوې دي قندهار استاذ د ننګرهار په مشهورو قومندانانو کې وه او د ناصر باغ په کیمپ کې دفن کړې شو تقریبا دوه ویشت (۲۲) کاله وروسته چې کله د ناصر باغ کیمپ ختم شو زه هلته پروګرام ته لاړم او عیني ګواهانو زما مخکې وویل چې دلته آوازه وه چې قندهار استاد راسپړي او خپلې علاقې ته یې جسد وړي ځان سره افغانستان ته وایي مونږ ورغلو او په خپلو سترګو مو قندهار استاد ولید چې روغ جوړ وه فقط بریت او نوکان یې غټ شوې وه نو دا هم دلیل د حیات د هغوي ده او عقلي دلیل

ده چې دوي کې څه حيات شته چې نوکان او ويښتان يې غځيږي .

همداسې ګواهان چې ددوي باره کې موجود دي دغسې ګواهان د صديقينو اوليا و باره کې هم موجود دي چې هغوي وروسته له وفات نه روغ رمټ راويستلې شوي په دې ارمړو کې زه پروګرام ته تللې وم هغه د چا چې پروګرام وه د مسجد سره خوا کې قبروه او د چا چې پروګرام وه هغوي د دغه شخص لمسي جوړيږي هغوي وويل چې زمونږ يو صاحب ته خوب کې راغې ډير وخت وتلې وه او وي ويل چې دا تاسې اودس کوي نو ما باندې تيريږي وايي بيا هغه ځاى مونږ وسپړه چې وم کتو نو روغ رمټ وه فقط بريت او نوکان يې غټ شوې وه دا شهيد نه وه بلکې عام سړي وه د مانکي شريف د شيخانو نه وه مونږ له دغه ځاى او چت کړ او خوا کې مو دفن کړ قبر يې اوس هم هلته شته دي .

مسئله د حيات برزخ دغسې شوه چې دا څلور تنې خرابيږي نه او ددوي روحونه چې محبوس دغلته نه وي روحونه يې ګرځي عليين ته ځي جنت ته ځي او دوي سره يې رابطه وي تنې يې په قبرونو کې وي خو دغه قبر دده **روضة من رياض الجنة** ورته ګرځيدلې وي دې کې وسعت راشي الى مد بصره کولاو شي او د جنت باغيچه شي ددې لپاره انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ کې د جمهورو امت مسلمه رايه داده چې ددوي دا تنې په قبرونو کې وي چيرته ځي نه خو فقط په تابعينو کې سعيد ابن مسيب رَحِمَهُ اللَّهُ راى داده چې د انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ تنې تر څلويښتو ورځو په قبرونو کې وي بعد له څلويښتو ورځو ځي چيرته ځي دلته سعيد ابن مسيب نور قول نه دي کړي چې چيرته ځي کوم بريلوي حضرات چې د حضور جسد ي قائل دي هغوي دليل کې دغه قول پيش کوي او دغه قول پسې ذهاب کوي چې د انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ يا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جسداً يو ځاى ته حضور کوي دا قول د سعيد ابن مسيب امام بيهقي راخيستي دي .

په حيات الانبياء کې امام بيهقي رَحِمَهُ اللَّهُ په دې موضوع کې مستقل کتاب ليکلي او دا قول د سعيد ابن مسيب يې هم راخستې ده يو مرفوع حديث يې هم دا باره کې پيش کړې ده هغه حديث داده چې نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې مونږ انبياء چې يو اکرم على الله يو دې نه چې مونږ اربعين يوماً نه زيات په قبرونو کې مونږ پريږدي .

امام بيهقي رَحِمَهُ اللَّهُ دې روايت نه جواب کوي چې معنى داده چې څلويښت ورځو نه مونږ زيات قبرونو کې نه پريږدي ، مطلب دا چې څلويښتو ورځو پورې دوي عبادات نه کوي

او ځلوېښت ورځې بعد دوي په قبرونو کې مونځونه شروع کړي تلاوتونه شروع کړي دعاوات شروع کړي او ددې نه بیا یو خوند اخلي داسې نه چې قبرونو نه یې باسي بلکې دوي د عامو انسانانو غوندې قبرونو کې پراته نه وي بلکې بیا آزاده زندګي وي.

تفسیر روح المعاني پاره ۲۲ سورة احزاب آیت : ۴۰ : ﴿مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ﴾، دې ځای باندې دا مسئله ډیر ښه چیړلې ده، او دا یې د جمهورو مذهب نه دي راخیستې چې څوک وایي چې انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ بعد له ځلوېښتو ورځو له قبرونو ووځي دا فقط د سعید ابن مسیب رایه ده نو جمهور امت مسلمه قول داده چې د انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ ذوات په قبرونو کې موجود دي چیرته ځي نه او دا قبور ورته د جنت د باغیچو نه باغیچه ګرځیدلي خرابیږي نه او عام مسلمانان او کفار ددوي تنې بیا خرابیږي په دې کې عالم هم ځان نه شي قیاس کولې عالم به هم خاوري کیږي او دا چې انبیاء نه خاوري کیږي شهداء نه خاوري کیږي حفاظ نه خاوري کیږي، او د بعضو په قول صدیقین اولیاء نه خاروي کیږي دا محض کرامات لهم بعد الموة دا بعد الموة ددوي کرامت دي کرامت نه بغیر څه نه شي جوړیدې ولې د خالق عادت په دې جاري ده چې د کوم چا نه روح لاړ هغه به پړسیږي هغه به خاوري کیږي بوي به کوي که هغه ګنهګار وي که نه وي مثلاً پیشو چې مړه شي پړسیږي خاوري کیږي او بوي کوي نو دا خو نه چې هغې ګناه کړي نا عادت د خالق په دې جاري ده چې کوم شي مړ شي هغه به پړسیږي کله چې خالق دا خپل عادت پریښود د عادت په خلاف یې وه پړسوه بوي یې وه کړ نو دا **محض کرامتا لهم** ځکه کرامت دي دا چې **امر خارق للعادة**، دا کوم خلک چې د حیات برزخي منکر دي هغوي وایي چې که تنه د انبیاء ده که د اولیاء وي که د شهداء ده دې ته څه حیات نه وي بلکې دوي وایي چې دده روح علین ته لاړ شي هغه تنعم حاصلوي او دا تنه چې ده که خرابیږي که نه خرابیږي وایي دا انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ نه خرابیږئ واي مړه پرته وي دې کې څه حیات نه وي حیات ورته نه مني پنچپیریان دا ددوي عقیده ده دوه دلیله د قرآن کریم نه دوي په خپله دعوی پیش کوي اول کې ماد هغوي جوابونه ذکر کړي وروسته بیا زه خپلو ادلوو ته راځم.

## الایرادات مع الجوابات :

اول دلیل : سورة نحل (۲۱) **أَمۡوَٰتٌ غَيۡرُ أَحۡيَآءٖۖ وَمَا يَشۡعُرُونَ أَيَّانَ يُبۡعَثُونَ** ، پیش کوي **اموات** خبر د مبتداء مقدرې شو هم **اموات** دوي مړه دي **غیر احیاء** ژوندي نه دي دا تاکید د **اموات** شو دوي پوهیږي نه **ایان یبعثون** کله به دوي پورته کولې شي دا **اموات** چې خبر د هم شو ضمیر غائبه مرجع مقدره ده دوي وایي دا معبودینو مطلقوو ته راجع ده نو دې کې عیسی عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ راغې دې کې عزیر عَلَيۡهِ ٱلسَّلَامُ راغې هغه انبیاء وه بس هغوي هم **اموات غیر احیاء** هغوي هم مړه دي ژوندي نه دي ، دوي دا تاویل کوي .

جواب دادی چې مراد دلته **اموات** خبر د مبتداء مقدرې دي چې **هم** دي مرجع د ضمیر د **هم اصنام** دي بتان یا دوي د انبیاء شهداء ذکر دلته نشته .

جامع البیان ، تفسیر الطبري جلد ۱۷ صفحه ۱۸۸ کې لیکي :

**حدثنا بشر قال حدثنا یزید قال حدثنا سعید عن قتادة** . ترجمه کوي : **أَمۡوَٰتٌ غَيۡرُ أَحۡيَآءٖۖ وَمَا يَشۡعُرُونَ أَيَّانَ يُبۡعَثُونَ وهي هذه الاوثان** وایي مراد په دې سره بتان دي **التي تعبد من دون الله اموات لا أرواح فیها ولا تملك لاهلها ضرا ولا نفعا** ، تصریح وشوه چې دا بتان یادوي ، ټول تفسیرونه ما وکتل اکثر مفسرین همدغه الفاظ نقلوي نو بس په دې مې اکتفاء وکړه چې داد بتانو متعلق ده مراد په دې سره شهداء انبیاء نه دي .

**دویم دلیل ددوي** : دویم دلیل ددوي دادی : ﴿**إِنَّكَ مَيِّتٞ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ**﴾ (سورة زمر آیت : ۳۰ ) معنی یې داسې کوي ته مړي یې او دا خلک مړي دي نو علم بنه شي ده دوي دومره جهلاء دي چې د **مَیۡت** او **مَیِّت** فرق نه شي کولې **مَیۡت** بسکون الیاء مړي ته وایي او **مَیِّت** هغه چې وروستو مړ کیږي په اعتبار د مستقبل سره .

روائع البیان في تفسیر آیات الأحکام للصابوني جلد ۱ ص ٦٤ :

**والمشهور عند أهل اللغة : المیۡت بالتخفیف من مات فعلاً وبالتشدید میّت من سیموت.**

د آیت مقصد دادي **انك میّت انك ستموت** تاسو به وفات کیږي دا خو د چا عقیده هم نه

ده چې وفات شوې نه ده يا جنازه پرې نه ده شوې مونږ خو ټول په دې متفق يو چې ده باندې دا حالات طاري شوي دي داچې دا حالات طاري شول لحد ته ورسيده دغه وخت کې حال څه ده.

اوس مَيْت دي که نه دي ددې بحث راسره وکړه ددې بحث دنيا کې راسره مه کوي چې ګنې موت پرې طاري شوې نه دي موت خو پرې طاري شو دا خو متفقه مسئله ده چې کله مبارک لحد کې کيښودل شو اوس ميت دي که نه حالات برزخي راسره وڅيړه نو : **وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَكِن لَّا تَشْعُرُونَ** ، البقرة آيت : ۱۵۴ ، **اموات** جمع د **ميّت** نه ده جمع د **مَيْت** ده نو معنى ميت ورته مه وايې د وفات نه وروسته.

**انك ميّت وانهم ميّتون** ، **انك لستموت وانهم لسيمتون** ( التفسير المنير للزحيلي جلد ۲۳ ص ۲۸۳ ) دا الفاظ نقل کوي.

تفسير القرآن العظيم منسوب للامام طبراني جلد ۳۰ ص ۴۶۱ : **معناه انك ستموت وانهم سيمتون** ، نو دا حالات برزخي داسې حالات دي چې دې کې اجتهاد نه شي کيدې ځکه مسئله پټه ده عقل کار نه کوي کيمره يا داسې نور اسباب کار نه کوي خلکو ډيرې تجربې کړي خو هيڅ يې هم نه دي تر لاسه کړي الله په خپل قدرت سره محجوب کړي نو چې عقل کار نه کوي اسباب کار نه کوي اجتهادي مسئله نه ده نو دغه ځاى کې مثبت به هم نص قرآني او حديث نبوي وي او منکر به هم محض کتاب الله او حديث رسول الله پيش کوي نو چې اوس دا مسئله مونږ په اجتهاد ثابتوو نو اجتهاد عقل خو هلته کار نه کوي نو مونږ به نص پيش کوو او څوک چې منکر دي هغه به هم نص پيش کوي چې په دا روضه کې پروت ده ميت ده داسې نص ترې مطالبه کړي قيامت به راشي خو دوي سره به د برزخي حال د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ او د انبياو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ د ميت لفظ پيدا نه کړي ..

## دليل د مثبتينو د حيات الأنبياء :

د شهداو لپاره د انبياء لپاره خصوصاً هغه انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ چې شهداء دي او اخص الخواص ځان ته محمد مصطفى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې هغه دلته زير بحث ده چې دوي د هغه د حيات نه منکر دي نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اجماع د مسلمينو **من الشهداء** ده شرح

الصدور کې امام سیوطي رَحِمَهُ اللّٰهُ په دې باندې اجماع رانقل کړي ځکه دا هغه اثر د زهرو د خیبر ده نو د شهادت مقام ده مبارک ته ثابت ده لمن یقتل في سبیل الله کې داخل دي.

وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ مه وایي په حق د هغه چا کې چې شهید شي في سبیل الله دا مقوله د لا تقولوا شوه او مقوله د قول نه وي مګر جمله وي کله چې لفظ د مقولې مراد نه وي لا تقل لهما اف چې لفظ د مقولې مراد نه وي نو مقوله جمله وي مقوله د قول څه معنی مفعول د لفظ د قول خو مقوله ورته ځکه وایي چې مفعول د فعل مفرد هم راځي جمله هم راځي او مقوله د قول یوائې جمله وي نو ځکه نحاة د هغه مفعول نه تعبیر دلته په مقوله سره وکړو ځان ته نوم یې ورته ورکړ ځان ته نوم یې ورته وضعه کړ نو مقوله د قول څه معنی مفعول د لفظ د قول نو مقوله د قول جمله وي دلته امواتاً مفرد دي نو جمله جوړه کړه خبر د مبتداء مقدرې یې کړه لا تقولوا هم اموات مه وایي چې دوي مړه دي نو اموات جمع د میْت شوه په سکون سره چې مړي ته وایي د میّت نه ده انك میت خو ویلې شي حالت برزخي ته یې مه راجع کوه حیات د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته خطاب وکړ انك میت تاسو باندې موت طاري شي.

نو مه وایي هم اموات چې دوي مړه دي بل احیاء تاکید شو بلکې ژوندي دي ولکن لا تشعرون لیکن تاسې په حقیقت او تفصیل د هغې پوهیږي نه .سورة بقرة آیت : ١٥٤.

دارنګې سورة آل عمران :

﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ﴾

دلته منعه د قول نه راغله چې په زبان ورته مړي مه وایه اوس که څوک وایي چې مړي خو دي خو د سوء ادب نه به مونږ مړي نه ورته وایو نو دلته اوس تا ګمان نه منعه کوي ولا تحسبن الذین قتلوا ګمان مه کوئ په حق د هغه چا کې چې شهیدان شوې دي في سبیل الله اموات د مړو ګمان هم پرې مه کوي بل احیاء بلکې دوي ژوندي دي عند ربهم یرزقون د رب کریم په نزد دوي ته رزق ورکولې شي ، قرآن عظیم الشان د لفظي تغیر نه محفوظ ده خو معنوي تحریفات په کې پنچپیریانو وهابیانو دومره وکړل هغه غټ غټ ملایان یې لګیا دي

په کې دې صريح نص نه چې اموات مه وايه دا څومره واضح دليل دي خو دوي په کې تاويل څه کوي بل احياء عند ربهم دا احياء ظرف دي اوس طالبانو ته چل بنايي د قران کريم د مقابلې بل احياء عند ربهم بلکې ژوندي دي د رب کريم په نزد باندې لا عندنا نو دا اوس چا ويلي دي اوس د آيت نچوړ دا جوړيږي چې عند ربهم ژوندي دي زمونږ په نزد خو نه دي ژوندي د خدای په نزد ژوندي دي تاسو نو څنګه وايي چې دا ژوندي دي د قرآن کريم دا غلط تعبير کولو باندې احياء ظرف وګرځوه تاسو ته ما د تفسير ابي سعود حواله ذکر کړي ده جلد ۱ صفحه ۱۴۸۹ او ظرف للفعل بعده دا بل احياء عند ربهم د يرزقون لپاره ظرف کړه يرزقون عند ربهم .

دوهم جواب دا که دا وسط کې راغې دا داسې مثال شو لکه بالآخرة هم يوقنون نو دا بالآخرة تعلق تر يوقنون نيسي يوقنون بالآخره نو دا شان عند ربهم يرزقون معنى يرزقون عند ربهم بل احياء باندې خبره خلاصه شوه مړي مه وايه بلکې ژوندي دي .

که دا وسط کې راشي ظرف د احياء هم شي ظرف د يرزقون هم شي د دواړو امکان شته په کې مفسرينو را اخيستي دي مراد د عنديت نه عنديت مکاني نه دي چې دا په قبر کې حيات نه لري او د خدای تعالى العياذ بالله کوم مکان دوي ګني ځي هلته او هلته ورته يو حيات روحي دي دغه معنى نه ده مراد د عنديت نه يا قربت دي او يا مراد د عنديت نه رايه ده لکه څوک وايي دا مسئله عند ابي حنفيه رَحِمَهُ اللَّهُ داسې ده عند الشافعي رَحِمَهُ اللَّهُ داسې ده عند بخاري داسې ده نو عنديت مکاني خو مراد نه وي په معنى د رايه سره وي دا مسئله عند ابي حنيفة د هغه په فيصله داسې ده بل احياء عند ربهم يا خو د عندنا نه مراد د عنديت تقرب زلفي ده معنى دا چې داد هغه مقربينو نه دي نو حيات يې هم ورکړي روزي هم ورکوي او يا عنديت په معنى د رايه سره دوي ژوندي دي عند ربهم په فيصله د باري تعالى باندې او لا تقدموا بين يدي الله چې فيصله د باري تعالى دوي باره کې د حيات ده مونږ هم مشروتان نه يو زمونږ هم هغه فيصله ده چې کوم خالق کړې ده چې په فيصله د خالق حيات دي نو زمونږ

په فیصله هم حیات دي.

**حکایت :** مولوي نادر شاه صاحب دولس (۱۲) کاله اشاعتي وه هغه چې د اشاعت نه توبه وکړه او د هغوي مقابله یې شروع کړه نو د هغې ډیرې وجهې دي یوه دا چې په بلوچستان کې وایي مناظره وه د حیات انبیاء په مسئله مونږ هلته لاړو د طاهر سره وایي زه لاړم دا خاص د طاهر ملا شاګرد وه نو مناظره وشوه هغه علماء وایي ډیر چالاکه وه زمونږ دا شیخ یې کلک راګیر کړ په مسئله د حیات انبیاء کې نو چې کله واپس وایي مونږ راتللو په لاره شیخ طاهر وایي ووېل چې یاره دا دوه آیاتونه دوي سره نه واي کنه نو دا مناظره یې رانه ګټلې نه شوه بس وایي ما په زړه کې ووېل چې ته خو ډیر بې دینه انسان یې ځکه چې ته اوس داسې نه کوې چې ته خپله فیصله د قرآن کریم تابع کړې چې آیاتونه راغلي خو زه به د خپلې راي نه تیر شم اوس ته د رایه نه نه تیریږې وایي چې کاشکې دا آیتونه، نه واي چې ما دا مناظره ګټلې واي نو ما وایي هلته فیصله وکړه چې زه ورسیږم نو ستا به مضبوطه مقابله کوم وایي چې کله راورسیدو زه هلته پنجپیر کې وم چې یو لنډ ږیرې وه د چاپ خانو والا وایي دا راغې مونږ کمره کې ناست وو سترې مشي یې وکړل شیخ ته یې ووېل چې هغه کار څنګه کړم وي کړم نو شیخ ورته ووېل هاو وي کړه ګورم چې څه وخت وروسته پوسترې راورسیدې چې شیخ په بلوچستان کې مناظره ګټلې په مسئله د حیات انبیاء کې نو وایي ما په زړه کې ووېل چې وا دروغجنه ستا شرم خو ما هلته ولید ته خو هغه علماو ډیر سپک کړې او دلته اوس پوسترې پسې خوروې نو بیا هغه بنه کلکه مقابله وکړه همدا وجه وه چې په خپل کور کې یې شهید کړو. نو دا د حیات د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لپاره دلیل پیش کیدې شي ځکه هغه شهید دي په اتفاق د امت.

**دریم دلیل :** سورة زخرف آیت ۴۵:

﴿وَاسْأَلْ مَنْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رُّسُلِنَا أَجَعَلْنَا مِن دُونِ الرَّحْمَٰنِ آلِهَةً يُعْبَدُونَ﴾.

تپوس وکړه د هغه رسل نه چې لیږلي مونږ وړاندې د تا نه آیا مونږ ګرځولي **من دون الرحمن** معبودان چې عبادت یې کیږي.

دا دلیل د **حیاة الانبیاء** دي او دلیل د لقاء د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دي د انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ سره چې

نبي عَلَيۡهِ السَّلَامُ د نورو انبیاو سره ملاقاتونه کړي دي که هغوي ته حیات نه وایي نو دا ملاقات څنګه کیده تکلیف بما لا یطاق خو جائز نه دي من ارسلنا من قبلك خو مخکې تیر شوي او ورته امر ده چې تپوس ترې وکړه نو چې ورسره ملاقي نه شي تپوس ترې څنګه کوي خو ددوي له انبیاء سره ملاقات وه په لیلة المعراج کې په مختلفو مواضعو دغه ملاقات کې ده ته خطاب کیږي چې تپوس ترې وکړه.

زاد المسیر في علم التفسیر جلد ۵ صفحه ۳۳۸ باندې لیکلي یو تاویل دادی:

**أنه لما أُسری به جُمِعَ له الانبیاء فصلى بهم.**

مونځ یې ورکړو **ثم قال له جبرائیل سل من أُرسلنا من قبلك** داد انبیاء حیات دلیل دي چې هغوي مبارکانو دغلته روحا یا په مثل د روح حاضري کړي وه تنې یې په مرقدونو کې وي نبي اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: **لا أُسأل قد اكتفيت** زه ترې پوښتنه نه کوم تفصیل یې بل روایت کې شته دي چې تپوس شکي کوي زما په کې شک نشته دي. هغه روایت دادی:

**و رواه عطاء عن ابن عباس و هذا قول سعید بن جبیر والزهري وابن زید قالوا جمع له الرسل لیلة أُسری به فلقیهم و أُمر أن یسألهم فما شك ولا سأل.**

شک یې نه وه نو سوال یې ونه کړو.

## څلورم دلیل: ﴿وَلَقَدۡ آتَيۡنَا مُوسَى الۡكِتَابَ فَلَا تَكُن فِي مِرۡيَةٍ مِّن لِّقَائِهِ﴾.

ورکړي مونږ موسی عَلَيۡهِ السَّلَامُ ته کتاب ته مه ګرځه في مرية په شک کې من لقائه د لقاء موسی عَلَيۡهِ السَّلَامُ، لقاء مصدر دی اضافت یی شوی ده ضمیر د مفعول ته هغه ضمیر ده مفعول راجع ده موسی عَلَيۡهِ السَّلَامُ ته به دغه تاویل چی مونږ تری اخذ کوو مه کیږه شکی من لقائه د ملاقات ستانه د موسی عَلَيۡهِ السَّلَامُ سره تا چی د موسی عَلَيۡهِ السَّلَامُ خومره لقاء ګانی کړی دې کې شک مه کوه دا یقیني لقاء وه **وجعلنا هدی لبنی اسرائیل** سورة سجده ایات ۲۳ تفسیر ابن کثیر دار طیبه جلد ٦ صفحه ۳۷۱.

**فلا تکن فی مرية من لقائه قال قتادة یعنی به لیلة الاسراء.**

ثم روي عن ابی العالية الرياحی قال حدثنی ابن عم نبيكم يعنی ابن عباس رضی الله قال قال رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُريت ليلة اسري بي موسى بن عمران ما تـه وښودلي شو موسى بن عمران ورأيت مالكا خازن النار والرجال فی ايات أراهن الله اياه بيايي ولوستل دا ايات فَلَا تَكُن فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَائِهِ.

انه قد رأى موسى عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ليلة أسري بـه دا ملاقات څو ځايـه وه يو ځای هغه قبر کې مونځ کوه لقاء وشوه بيا په آسمان کې په پنځم آسمان بيا په شپږم اسمان اختلاف د روايـاتو دي راجح شپږم آسمان دي هغلته څو لقاء ګانې شوي دا بار بار چې دې ځي راځي دا مونځ کمېږي بيا لقاء وه بيت المقدس کې چې هغلته دې امام جوړيږي خبرې خپلو کې کيږي نو ددغه لقاء ګانو باره کې وايي شک مه کوه .

قرآن کريم کې خطابات نبي اکرم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تـه پـه دري طريقو باندې وي کله خطاب ده ته کيږي امت هم مراد وي دې هم مراد وي لکه اقيموا الصلاة لدلوك الشمس دې هم مراد ده امت هم مراد ده کله خطاب ده ته کيږي امت نه يې مراد فتهجد به نافلةً لك دا ده پورې خاص ده امت نه دي مراد ده باندې فريضه ده نورو باندې مسنو نه پاتې ده ، کله خطاب ده تـه کيږي امت مراد وي دې نه يې مراد مثال لکه واخفض لهما جناح الذل من الرحمة سورة اسراء .

دا دليل ددې دي چې ده ته يې وايي امت ته يې اوروي دې نه دې مراد نو دا خو يقيني خبره ده چې د نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ دغه وخت کې نه مور وه نه يې پلار وه نو دا دليـل ددې ده چې ده تـه يې وايي امت تـه يې اوروي نو ذا هم ددې قبيلې نـه ده دې نـه دې مـراد ځکه دا عمـل ده پـه سترګو ليدلي ده يو سړي چې په سترګو يو شي وګوري نو کله هم شک نه کوي رب کريم تـه دا علم وه چې امت کې به بيا پنچپيريان پيدا شي هغوي به بيا شک کوي نو ده ته يې خطاب وکړ فلا تکن في مرية من لقائه ، شک مه کوه د لقاء د موسى عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ نه ده خو شک نه کولو امت ته وايي چې تاسو شک مه کوي دا لقاء شوې ده .

دې دري آيتونو نه تاسو استدلال کولې شي د حيات انبياء لپاره مفسرين پـه دغـه ځای کې دا موضوع چيړي .

سنن نسائي بيروت چاپ جلد ۳ ص ۲۱٦ ، أخبرني أحمد بن سعيد قال حدثنا حبان قال حدثنا حماد بن سلمة قال أنبأنا ثابت و سليمان التيمي وعن انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال: مررت على قبر موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ وهو يصلي في قبره تير شوم د موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ په قبر باندې ده مونځ كوه په قبر كې دې كې خو هيڅ چون چرا نشته ځكه يصلي في قبره په خپل قبر كې مونځ كولو اقوای د ادلوو د مثبتينو نه د حياة الانبياء چې كوم سيوطي رَحِمَهُ اللهُ په دې ليكلي او يا امام بيهقي رَحِمَهُ اللهُ په دې باندې ليكل كړي دې مستقل رسائل د حيات انبياء يې ليكلي دي :

تنزيه الانبياء عما نسب إليهم حثالة الأغبياء داد ابن خمير ده دا په عصمت او حيات دواړو ليكلې شوې ده.

او تنزيه الانبياء عن تسفيه الاغبياء د امام سيوطي رَحِمَهُ اللهُ په عصمت او حيات ليكلي ده او لفظ حيات الانبياء باندې له اقوای ادلوو دا پيش كړي دا حديث مسند احمد بن حنبل جلد ۳ ص ۱۲۰ صحيح مسلم بيروتي چاپ جلد ۷ صفحه ۱۰۲ ، صحيح ابن حبان جلد ۱ ص ۲۴۲ ، مسند البزاز مسند البزاز جلد ۱۸ – ۱۰ صفحه ۱۳ – ٦۲ ، مسند أبي يعلى جلد ٦ ص ۷۱ ، التوحيد لابن خزيمة جلد ۱ ص ۵٦۷ ، المعجم الأوسط جلد ۸ ص ۱۳ ، دا ټولو دغه حديث په دغه مذكورو حوالو كې را اخيستي دي.

دا چې دا مونځ او تلاوت دا خاص نه دي تر انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ دا نورو شهدا او صلحاء و ته هم دلته حيات دي هغوي يې كولې شي دا لاندې حوالې دي :

التهجد و قيام الليل جلد ۱ ص ۲۳۵ ، روايت پيش كوي :

قال كنا اذا مررنا بجنبات قبر الثابت البناني مونږ به چې په څنګ د الثابت البناني په قبر تيريدو سمعنا قرأة القرآن د قرآن عظيم الشان تلاوت به مو اوريده.

د بخاري هغه روايت هم پرې دال ده چې يو جماعت روان وو هغه ډله وايي چې مونږ په يوه دشته كې خيمه ولږوله چې مونږ واي د لاندې سورة ملک واوريده هغه روايت پرې دال ده د قرآن عظيم الشان په تلاوت دا خو انبياء نه وه عام صلحاء يا شهدا وه.

التهجد و قيام الليل جلد ۱ صفحه ۴۴۴ :

حدثنا هارون بن عبدالله حدثنا سيار عن جعفر سمعت ثابت البناني (ډير كرتې دا دعاء به يې كوله) مالا أحصى يقول في دعائه: اللهم ان كنت اذنت لاحد ان يصلي في قبره فأذن لي أن اصلي في قبري.

خدايه! كه يو كس ته دا اجازت كوي چې په قبر كې مونځ كوي نو ما ته هم وكړه دلته اختصار دي بل روايت كې راځي كه ته اجازت وركوي چې مونځ وكړي بعد الانبياء يعنې انبياء ته خو دي كړې ده كه هغې نه سواء بل چا ته د مونځ اجازت په قبر كې كوي نو دا مونځ زما خوښ دي ما ته هم اجازت وكړه دغه دعاء يې قبوله شوه ده بيا قبر كې مونځ كوه اسناد يې حسن ده پاس روايت پرې دال دي.

دارنكې القبور جلد ١ صفحه ٢٨:

حدثني محمد بن الحسين حدثني خالد بن يزيد القسام حدثنا الربيع بن صبيح قال لما مات ثابت البناني دخلت أنا وحميد الطويل و جسر أبو جعفر قبره فلما وضعناه في لحده و جعلنا نسوي عليه اللبن وكان حميد مما يلي رأسه فنظر فلم يره في قبره فأومأ إلينا، أومأ إليه لا تفتن الناس وسوينا عليه التراب و رجعنا فأتى حميد سليمان بن علي فأخبره الخبر فلما كان في الليل جا في الخيل فنبش عنه فلم يجده في قبره فسوى عليه ثم انصرف فلما أصبح أتينا ابنته فسألناها عن صنيعه فقالت ما أراكم إلا وقد نفرتموه من قبره قلنا أجل وكيف ذلك قالت أحدثكم إنه مكث خمسين سنة يدعو الله في صلاته إذا كان السحر قال يا رب ان كنت اعطيت احدا الصلوة في قبره فاعطينيها فلم يكن الله ان شاء الله ليرد ذلك الدعاء قال الربيع قال جسر أنا والله الذي لا اله الا هو رأيته الليلة في منامي وعليه ثياب خضر فإنما يصلي في قبره.

حديث ده چې كله ثابت بناني مړ شو نو مونږ برابرولو خښتې او حميد يې سر خوا ته نيږدې وه چې ګوري څنګه چې قبر كې كيخودې شو نو قبر كې نه وه يعنې په نظر نه راتلو مونږ ته يې اشاره وكړه او وې ويل چې په خوله لاس كيدې چا ته څه مه وايې خاورې مو پرې برابرې كړې كله چې شپه شوه څه آسونه پرې راغلل قبر دده يې را لوڅ كړ دې په كې نه وه بيا

يې قبر پرې برابر کړ خلک ترې لاړل سحر چې شو مونږ يې لورته راغلو پو ښتنه مو ترې وکړه چې ده څه کار کولو هغې راته وويل ده به پنځوس کالو راهيسې دا دعا کوله:

**قال يا رب ان كنت اعطيت احدا الصلوة في قبره فاعطينيها فلم يكن الله ان شاء الله ليرد ذلك الدعاء قال الربيع قال جسر أنا والله الذي لا اله هو رأيته الليلة في منامي وعليه ثياب خضر فإنما يصلي في قبره .**

شني جامې يې په تن وې قبر کې يې مونځ کولو .

او روايت د حلية الاولياء جلد ۲ صفحه ۳۱۹ دا دی چې :

**فلما سوينا عليه اللبن سقطت لبنة فإذا أنا به يصلي في قبره .**

چې کله مو پرې دا خښتې برابرې کړې نو يوه خښته ماته شوه چې کتل مو په قبر کې په لمونځ ولاړ وو.

دريم روايت د حياة الانبياء للبيهقي جلد ۱ صفحه ۷۰ انس بن مالک يې راوي دي:

**قال رسول الله صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : الأنبياء أحياء في قبورهم يصلون .**

انبياء ژوندي دي په خپلو قبرونو کې مونځونه کوي .

اوس که في قبورهم د احياء لپاره ظرف وګرځوي نو هم د پنچپيري خوله پرې ماتيږي او که د يصلون لپاره يې ظرف وګرځوي نو هم يې پرې خوله ماتيږي او که د دواړو لپاره يې وګرځوي نو خبره واضحه ده الانبياء احياء في قبورهم په دوي رد ده دوي وايي په عليين کې حيات دي په قبر کې حيات نه دي.

**څلورم دليل :** حيات الانبياء للبيهقي جلد ۱ صفحه ۷۴ هغه مخکې او دا يو روايت ده خو هغه مرفوع ده او دا موقوف د انس صاحب ده :

**الانبياء في قبورهم احياء يصلون .**

انبياء په قبرونو کې ژوندي دي مونځونه کوي .

روايت چې کله د حديث مرفوع صحابي نه وشي مخالفت ثابت نه شي دا يې رايه وي چې راى نه وي کله هم حديث نه بيانوي .

**پنځم دليل :** سنن ابي داؤد جلد ۲ صفحه ۱۶۹ :

**حدثنا محمد بن عوف حدثنا المقري حدثنا حيوة عن ابي صخر حميد بن زياد عن يزيد بن عبدالله بن قسيط عن أبي هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أن رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال : ما من أحد يسلم عليّ الا رد الله عليّ روحي حتى ارد عليه السلام.**

نشته يو كس چې سلام واچوي په ما الا قد رد الله علي روحي مگر واپس كړي په ما خداى تعالى روح زما زه واپس كوم په ده باندې سلام.

دا حديث حيات الانبياء د بيهقي جلد ۱ صفحه ۹۷، ۴۵۸، هغه معنى كوي :

**وقال وانما أراد والله أعلم**، معنى يې داده **إلا وقد رد الله الى روحي حتى ارد عليه السلام**، دا قد ځكه راوباسو چې في الجملة استدلال دوي ترې كوي دوي وايي چې گورئ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره هميشه روح نه وي كله چې ته سلام واچوي نو روح دغه وخت كې ورته راشي الا رد الله خداى تعالى دا روح په ما واپس كړي نو دا دليل ددې ده چې مخكې روح نه وه چې سلام دې واچوه روح واپس راغې نو دا خو وايي د موت دليل دي د حيات نه دي نو ځكه امام بيهقي رَحِمَهُ اللَّهُ ترې جواب كوي.

وروسته به عبارت د امام سيوطي رَحِمَهُ اللَّهُ راشي هغه تفصيلي جواب كړي هغه دا چې:

**الا رد الله عليّ روحي**، دا رد الله عليّ روحي جمله حاليه ده او جمله حاليه چې كله مثبت وي او مصدره بالماضي وي **لا بد من قد ظاهرتاً** او **مقدرتاً**، **حصرت صدورهم** په معنى د **قد حصرت صدورهم** دا جمله حاليه ده مثبته ده بيا مصدره په ماضي ده نو لا بد **من قد** نو **ما من احد يسلم الا قد رد الله عليّ روحي**، ځوك چې په ما سلام نه اچوي مگر خداى تعالى ما باندې زما روح واپس كړې وي زه ورته رد كومه نو داسې نه ده چې ستا د سلام نه بعد روح ورته واپس شي نو د امام بيهقي رَحِمَهُ اللَّهُ دغه ځاى ته اشاره ده.

دا حديث سنن صغرى جلد ۲ صفحه ۲۱۰، شعب الإيمان د بيهقي جلد ۳ صفحه ۱۳۹، المعجم الكبير د طبراني جلد ۱۹ صفحه ۲۴۶، المعجم الاوسط جلد ۳ صفحه ۲۶۲، معجم الشيوخ ابن عساكر جلد ۲ صفحه ۴۰، الدرة الثمينة في أخبار المدينة جلد ۱ صفحه ۱۵۷،

دې ټولو دا حدیث په مذکورو حوالو کې ذکر کړې .

په دې کې بیا دا روایت ورسره ذکر کوي :

**وروي ان عمر بن عبد العزیز کان یبرد البرید من الشام یقول سلم لي علی رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ .**

دا الفاظ یې زیات کړي چې : عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللهُ به قاصد لیږولو مدیني منورې ته ورته به یې وویل چې نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ ته زما سلام وایه .

ګوره دا اهل حدیث بدعت ګڼي او عدالت د عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللهُ مسلم ده عند الامة ټولو کتابونو د علم فقه ټولو کتابونو دا لیکلي چې ته به خپل سلام پیش کړې بیا چې نیابتاً چا سلام درکړې وي هغه به پیش کړې .

دا بحر الرائق لیکلي ، شرح مراقي الفلاح لیکلي ټول کتب د علم فقه په کتاب الحج کې طریقه د زیارت مصطفی کې لیکلي .

فتح الباري د ابن حجر جلد ٦ صفحه ۴۸۸ :

**عن ابي هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رفعه ما من احد یسلم عليَّ الا رد الله عليّ روحي حتی ارد علیه السلام ورواته ثقات** . راویان یې ثقه دي دې وایي :

**وجه الاشکال فیه ان ظاهره** چې ظاهر نه فهمیږي **ان عود الروح إلی الجسد یقتضي انفصالها عنه وهو الموت .**

دا خو د موت اطلاق پرې وشو او دا خو د اسلافو عقیده نه ده .

**وقد اجاب العلماء عن ذلك بأجوبة احدها ان المراد بقوله رد الله عليَّ روحي ان رد روحه کانت سابقة عقب دفنه .**

رد د روح مخکې شوې ده د فن پسې هغه ته روح واپس شوې ده حیات ورته ثابت ده نو معنی یې دا شوه چې دا کلام ما ته را رسي ځکه ما ته خدای پاک روح واپس کړې دي .

**لا أنها تعاد ثم تنزع ثم تعاد .**

دغه معنی نه ده چې روح ځي بیا معاد کیږي دا خو ټوله دنیا کې هر وخت خلک سلامونه

وايي دا خو عقل هم نه مني چې روح دې ترې ځي بيا دې راځي او دا سلسله هم داسې جاري وي نو دا تاويل عقلا ممنوع دي .

يا دويم جواب دا كوي چې مراد د روح نه هغه ملک مؤكل بذلك دي لكه وايي :

وان المراد بالروح الملك المؤكل بذلك .

يعنې خداى پاک هغه فرشته ما ته راوليږي چې كوم د سلام په راوړلو مقرره ده .

او يا دا چې نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته حيات شته خو دې مستغرق دي په امورو د الملأ الاعلى كې په تفكراتو او امورو د آخرت كې ذهن دې خوا متوجه نه وي چې ته كله كلام د سلام شروع كې نو هغه خپل التفات تا ته راواړوي لكه وايي :

فاذا سلم عليه رجع إليه فهمه ليجيب من سلم عليه وقد استشكل ذلك من جهة أخرى.

ديو بل اړخ نه اشكال شته :

وهو انه يستلزم استغراق الزمان كله في ذلك الاتصال الصلوة والسلام عليه في أقطار الارض ممن لا يحصى كثرة .

وايي كه دا معنى ته كوي چې دده ذهن مستغرق وي بل خوا ديخوا را تاو شي نو دا خو وايي هر وخت سلامونه شروع وي نو څو مره به خپل ذهن ديخوا را اړوي نو دې جواب وركوي او وايي :

واجيب بأن امور الاخرة لا تدرك بالعقل واحوال البرزخ اشبه باحوال الآخرة .

هغلته عقل كار نه كوي د قيامت په ورځ عقل كله كار كوي او كارونه د قبر مشابهت لري د قيامت سره .

عون المعبود شرح سنن ابي داؤد جلد ٦ صفحه ٢٧:

اى ما من احد يسلم علي الا ارد عليه السلام لأني حي اقدر على رد السلام .

زه ژوندې يم د جواب په وركولو د سلام قدرت لرم .

وقوله حتى ارد عليه اى فسبب ذلك حتى ارد عليه .

دا حتى يې سببي كړه .

فحتى هنا حرف ابتداء تفيد السببية مثل مرض فلان حتى لا يرجونه.
په سبب د هغې به امید ساتي.
لا بمعني کي و بهذا اتضح معنى الحديث ولا يخالف ما ثبت حياة الانبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ.
وقال السيوطي وقع السوال عن الجمع بين هذا الحديث وبين حديث الانبياء احياء وفي قبورهم يصلون و سائر الاحاديث الدالة في حياة الانبياء فان ظاهر الاول مفارقه الروح في بعض الاوقات، الّفتُ في الجواب عن ذلك تأليفا سميته انتباه الاذكياء بحيات الانبياء.
وايي کتاب مې پرې ليکلي.
و حاصل ما ذكرته فيه خمسة عشر وجهاً اقواها ان قوله رد الله روحي جملة حالية و قاعدة العربية. جمله حاليه ده او قاعده عربيه داده:
ان جملة الحال اذا صدرت بفعل ماضٍ قدرت فيه كقوله تعالى او جاء وكم حصرت صدورهم اى قد حصرت وكذا ههنا يقدر قد والجملة ماضية سابقة على السلام الواقع من كل احد وحتى ليست للتعليل بل لمجرد العطف بمعنى الواو فصار تقدير الحديث ما من احد.
څوک به په ما سلام نه اچوي:
الا قدر رد الله عليَّ روحي قبل ذلك وارد عليه.
مگر ما باندې خداى تعالى روح مخکې واپس کړې وي زه ورته رد کومه.
تيسر شرح جامع صغير دمناوي جلد ۲ صفحه ۴۹۰ کې بل جواب کوي هغه وايي:
وما من احد يسلم عليَّ الا رد الله عليَّ روحي اى رد عليَّ نطقي و هو حي دائما وروحه لا تفارقه لان الانبياء احياء في قبورهم.
روحونه ترې نه ځي ځکه د هغوي روحونه هغوي نه، نه جدا کيږي.
الدرة الثمينة في اخبار المدينة جلد ۱ صفحه ۱۵۷: ابي هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يې راوي دي:
ان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال ان عيسى بن مريم مار بالمدينة حاجا او معتمرا ولئن سلم عليَّ لاردن عليه.

عيسى عَلَيْهِ السَّلَام به د مديني په لار تيريږي يا به حج کوي يا به عمره کوي که په ما يې سلام واچوه نو وعليکم السلام به ورته وايم.

حيات الانبياء د امام بيهقي جلد ۱ صفحه ۴۵۸، صفحه ۱۰۶:

حدثنا ابوبکر بن ابي الدنيا حدثني سويد ابن سعيد حدثني ابن ابي الرجال عن سليمان بن سحيم قال رأيت النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في النوم فقلت يا رسول الله هؤلاء الذين يأتونك فيسلمون عليك. دا خلک راځي په تا سلام اچوي.

اتفقه سلامهم قال نعم وارد عليهم. پوهيږم پرې او جواب هم ورکوم.

دارنګې حيات الانبياء جلد ۱ صفحه ۱۰۴:

عن ابي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من صلى علي عند قبري سمعته و من صلى علي نائياً منه ابلغته.

څوک چې زما قبر سره نزدې په ما سلام وايي زه يې اورمه، او څوک چې د لرې نه په ما سلام وايي چې کومه فرشته مقرره ده په دې ماته رارسولې شي.

دا دليل د حيات انبياء او سماع الموتى ده.

دارنګې سنن نسائي جلد ۳ صفحه ۹۱:

عن اوس بن اوس عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال ان من أفضل أيامكم يوم الجمعة فيه خلق آدم عَلَيْهِ السَّلَام و فيه قبض و فيه النفخة و فيه الصعقة فأكثروا عليَّ من الصلاة فأن صلاتكم معروضة عليَّ قالوا يا رسول الله! و كيف تعرض صلاتنا عليك و قد ارمت اى يقولون قد بليت قال ان الله عز و جل قد حرم على الارض ان تاكل اجساد الانبياء.

الله حرام کړې چې وخوري ځمکه اجساد د انبياو.

دا روايت په سنن ابن ماجه جلد ۲ صفحه ۵۵۶ دده الفاظ دادي:

قال قلت و بعد الموت قال نعم و بعد الموت ان الله حرم على الارض ان تاكل اجساد الانبياء فنبيُّ الله حي يرزق.

د خداي نبي به ژوندې وي روزي به ورکولې شي دې سند کې څه انقطاع شته باقي سند صحيح دي مسند احمد بن حنبل جلد ۴ صفحه ۸ دا حديث ذکر کړي دي .

صحيح ابن خزيمة جلد ۳ صفحه ۱۱۸، مسند البزار جلد ۸ صفحه ۴۱۱، المستدرك على الصحيحين للحاكم مع تعليقات الذهبي جلد ۱ صفحه ۴۱۳، المعجم الاوسط جلد ۵ صفحه ۹۷، مسند الدارمي جلد ۲ صفحه ۹۸۱، مصنف ابن ابي شيبة جلد ۲ صفحه ۵۱۶، شرح سنن ابي داود جلد ۶ صفحه ۲۴۲.

**فهذا الحديث دليل على ان الارض لا تاكل اجساد الانبياء وانهم احياء في قبورهم حيات برزخية تختلف عن حيات الدنيا و تختلف عن الحياة الاخرة بعد البعث والنشور فلا يقال ان حياتهم في قبورهم كحياتهم في الدنيا بل حياتهم في البرزخ تختلف عن حياتهم في الدنيا وتختلف عن حياتهم بعد البعث والنشور والمؤمن يصدق بكل ما جاء عن الله وعن رسول الله ويؤمن بكل ما اخبر به الله ورسوله** صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

موطأ د امام محمد جلد ۳ صفحه ۴۸۹، انس بن مالک رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ يې راوي ده :

**قال رسول الله** صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **كأني انظر إلى موسى** عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ **يهبط من ثنية هرشیٰ ماشيا عليه ثوب اسود** . نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ فرمايي ما کتلې چې موسى عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ راکوزيده ثنية هرشى د غونډې نوم ده را روان وه پيدل او تورې جامې يې وي .

ددې شرح **التعليق الممجد على موطاء امام محمد** د عبد الحي لکنوي ليکلي ددې په حاشيه کې ليکلي دي :

**فيه اثبات حياة الانبياء وانهم يحجون ويصلون .**

تفسير حقي جلد ۱۳ صفحه ۲۸۱ :

**أن حياة الانبياء والاولياء حياة دائمة في الحقيقة ولا يقطعها الموت الصوري .**

د انبياء اولياء ژوند دائمي حقيقي ژوند ده نه قطع کيږي په مرګ صوري سره صوري مرګ پرې راشي خو حيات يې نه ختموي هغه حيات برزخي .

فانه انما يطرأ على الاجساد بمفارقة الارواح .

د روح جدائي ورنه راځي .

مع ان اجسادهم لا تاكلها الارض فهم بمنزلة الاحياء من حيث الاجساد ايضاً .

داسې ژوندي دي لکه جسد يې چې ژوندې وي .

دارنګې معاني الاخبار للكالاباذي جلد ١ صفحه ٢٢٢ :

فاذا جاء حياة الشهداء بالكتاب والسنة جاز حياة الانبياء والرسل عَلَيْهِمُ السَّلَامُ والحي يذكر الله ويثنى عليه ويدعوه .

نو دا ثابته شوه چې دوي ثناء هم وايي دعا هم کوي مونځ هم کوي .

دارنګې عون المعبود شرح سنن ابي داود جلد ٣ صفحه ٣٧١ :

حرم على الارض اجساد الانبياء ، دې ځای کې وايي :

اى من ان تاكلها فان الانبياء في قبورهم احياء قال ابن حجر مكي وما افاده من ثبوت حياة الانبياء حياتاً بها يتعبدون ويصلون في قبورهم مع استغنائهم عن الطعام والشراب كالملائكة امر لا مِرْية فيه . دا داسې فيصله ده چې شک په کې نشته .

وقد صنف البيهقي جزا في ذلك .

دارنګې تفسير مظهري موافق للمطبوع جلد ١ صفحه ١٥٢ :

فذهب جماعة من العلماء إلى ان هذه الحياة مختص بالشهداء والحق عندي عدم اختصاصها بهم بل حياة الانبياء اقوى منهم واشد ظهورا اثارها في الخارج حتى لا يجوز النكاح بازواج النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بعد وفاته .

دا يې دليل دي :

بخلاف الشهيد والصديقون اولياء ايضا اعلى درجة من الشهداء والصالحون يعني الاولياء ملحقون بهم كما يدل عليه الترتيب في قوله تعالى : من النبيين والصديقين والشهداء والصالحين .

